# د خوشال کرکه له خټکو

لیکنه : ضیاءالحق سیند

خوشال خان خټک د شهباز خان زوی د یحیی خان لمسی د ملک اکوړي کړوسی ، چې په ۱۰۲۲ س ل کال په اکوړه خټک کې د دې دنیا ته سترګې پرانستې دي ، څنګه چې د نومړي د نوم له روستاړي څخه هم څرګندېږي ،چې په قوم خټک دی او خټک د پښتنو یوه ستره توریالۍ قبیله ده ، خو خوشال خټک ځای ځای په خپل دېوان کې د خټکو له نامې سره کرکه ښودلې ده ، ما خپله د خوشال خټک دېوان بیا بیا لوستی دی ، نومړی د ټولو پښتنو نه ګیله من ښکاري خو په ځانګړې ډول د خټکو او یوسفزیو نوم بیا بیا په بدو ټکو را اخلي ، هغه ځکه چې یادونه د هغه چا کېږي ، چې هغه یو څوک وي ، خټک له نومړي یو ځای خورا زیات اوسیدل او خورا ځواک خاوندان ول ،خو هغه وخت د لنډې د سیند د غاړې خټک د اکوړه خټک د سرای اوسیدونکي په دوه ډلو وېشل شوي وو ، څه د خوشال تر شا او څه نور هم د مغلو د نوکر د خوشال خټک د زوی بهرام خان تر شا ولاړ وو ، نو خوشال خان د مجبورۍ له امله خټک په بد نوم یادول ، ان تر دې چې د خپل ځان نه یې په دې کرکه په دې راغلې ،چې دی هم خټک دی او په دې اړه وایي:

د خټکـــو حقیقت را ته ښـــکاره شـــو

زړه مې بد له خپله ځانه چې خټک یم

(دېوان، ۵۷۹ مخ)

او بل ځای د خټکو له نوم څخه انکار کوي ، او له ټولو خټکو څخه نا خوښه ښکاري او توبه ګار دی



د خټکو نامې هومره زړه نه خوښ دی

چې تـــوبه د همـــګي خټک له نامه

(دېوان، ۶۰۳مخ)

د خوشال خان کورنۍ پلار تر پلاره د خټکو خانان او مشران پاتې شوي وو ، خو کله چې خوشال د مغلو خلاف شو ، نو هغه خاني ملکي هر څه تري پاتې شول ، د افغان په نامه یې توره تر ملا کړه او پښتنه مېړانه او ننګ یې مله وو ، خوشال خان په خپل قوم د هیڅ ډول مرستې سپمی نه و کړی ، نو ځکه ترې ګیله من ښکاري.

د نعمت په قـــدر هيڅ خــــبردار نه دي

نوم ختک به مې خلاص نه وي له انعامه

(دېوان، ۶۰۳ مخ)

بل ځای بیا نومورې د ختکو په لیکه کې د پښتنو دوه نور درانه او ستر قومونه (بنګښ او ورکزي) هم ورګډوي او د دې درې واړو په کورونو يو ځای د ماتمونو غوښتنه کوي.

که ختک دی که بنګښ که ورکزی دی

وار په وار يې په کـــور وشه ماتــمونه

(دېوان، ۵۵۵ مخ)

بل ځای بیا یوسفزي تر سپیوو بدتر ګڼي، هغه داسې چې يو ځل ختک تر سپو بېکاره بنيي او د ختکو سپي تر یوسفزیو بهتر ګڼي، او وايي:

د ختکـــو سپي بهتــــر تر یوسفــــزیو

که ختک دی هم په خوی تر سپي بېکاره

(دېوان، ۵۵۵ مخ)

او په اخره کې وايي :

که ختکو راته شا کـــړه مخ يې تور شه

زه يو ازې په تکيه د خدای شیرک یم

(دېوان، ۵۷۹ مخ)

پای

یادونه : د پښتنو ټول قومونه په ننګ ، پت ، مینه او ښېرازې کې یو له بله کم نه دي او هر یو ځان ځان ته ځانګړی مقام لري ، دا د خوشال خان خټک د خولې خبرې دي ، زما نه دي ، کېدای شي ،چې د نومورې په کمو بدو بد ترې راغلي وي دا د هغه خپل کار دی ، خو زه په خپله ټول قومونه ته په یوه سترګه ګورم، هیله مند یم، چې څوک له ما څخه نا خوښه شوي نه وي.

په درنښت

ستاسو ورور : ضیاءالحق سیند

پته: بغلان ولایت ، پلخمري ولسوالی د ډنډ غوري زرغونه سیمه

۱۳/ ۱۱/ ۱۳۹۴